# اخوند پنجو
# او د دې ډلې کارونه په پښتو ادب کې

د پښتو ادب په منځنۍ دوره کې تر ۹۰۰ هـ وروسته په ځینو لویو کورنیو او سیاسي او دیني ډلو کې روزل سوی دئ. په دې دوره کې پښتانه په یوه اوږده حیاتي مجاهده ګرفتار وه او د دې ملي مجاهدې یو ډېر مهم مرکز هم د اټک را په دېخوا د پښتونستان سیمې او غرونه وه.

دلته ملي رجالو او د پښتنو رهبرانو د مغولو د غښتلي او لویې شهنشاهۍ سره چې مرکز یې ډیلي و مقابله کوله، او د دوی د نهضتونو او ملي حرکاتو اساس هم د آزادۍ ساتنه او د پښتنو د ملي موجودیت خوندي کول و.

له دې حرکت سره پر اړخ یو بل محرک هم تل موجود و، چې دوی به د دیني تبلیغ او تلقین له لارې خپل هغه لومړی ملي مقصد ټینګاوه او د دې تلقین له پاره نو دوی پخپله ژبه د خلکو پوهونه او ځیرونه لازمي ګڼله.

په داسي یوه اجتماعي او سیاسي چاپېر کې نو ملیت او دین او ادب څنګ پر څنګ سره تله او موږ وینو چې د پښتو ادب په تاریخ کې ځیني درنې او لویې کورنۍ او ډلې پیدا سوي، چې د اجتماعي او دیني او سیاسي لوړو مقاصدو له پاره یې د پښتو ادب هم پخپله غېږ کې روزه او زموږ د ژبې ځیني ګرانبها آثار او کتب د دغو کورنیو او ډلو په غېږ کې پالل سوي دي.

په دې سلسله کې موږ دغه درنې کورنۍ پېژنو :

۱. د یوسفزو ګڼه او لویه کورنۍ، چې ملک احمد او ملک ګجو یې سیاسي مشران او شیخ ملي یې اجتماعي او دیني مشر و او د شیخ ملي په لاس دوتر (دفتر) په پښتو ولیکل سو.
۲. د شیخ رحمکار کاکاخېله کورنۍ چې د خټکو څخه وه او د ده ډله.
۳. د خوشحال خان خټک کورنۍ او ډله یې.
٤. د پیر روښان کورنۍ او ډله یې.
٥. د اخوند درویزه کورنۍ او ډله یې.
٦. د سلطان محمد ګدون او شیخ پنجو ډله.

دا کورنۍ او ډلې یوازې د اټک او خیبر تر منځ د پېښور په سمسوره وادي کې تېرې سوي دي، چې ډېر د پښتو ادبي آثار او کتب او د شعر دېوانونه او د تاریخ کتابونه پکښې لیکل سوي دي او که سړی نوره پلټنه او ګروېږنه وکي نو ښایي چې دغسي نورې ډلې او کورنۍ هم مینده کې، خو دلته به زه یوازې د اخوند پنجو پر ډله باندې د تاریخي واقعو په رڼا کې لږ څه درسره وږغېږم :

هغه وخت چې د پښتنو ټولواکي او د لودیانو د درنې کورنۍ برم په هند کې راغوځارېدونکی و او بابر مغولي بریالي د پښتنو بېړۍ غرقولو ته ملا تړلې وه، د بر اباسین پر دې غاړه او پورې غاړه کې د مهابڼ تر لمنو یو د آزادۍ او ملي تنظیم او دیني اصلاح تحریک روان و، چې مشر یې سلطان محمود ګدون (یو کاکړ پښتون) و، او دغه کډون قوم د هزاره په وادي کې د مهابڼ تر غره پورې پراته دي[۱]. سلطان محمود یوه ډله غښتلي او خورا ننګیالي شاګردان او پیروان وروزل او د ده په شاګردانو کې یو سړی ډېر مشهور سو، چې نوم یې سید عبدالوهاب

او د سید غازي زوی و، دده پلار سید غازي په هند کي د لودیانو سقوط په سترګو لیدلی او پښتونخوا ته راغلی و، ده د یوسفزو په یارحسین کي د ملک ګجو خان تر سیوري لاندي ژوند کاوه، څو چي په ۹۸۹ هـ په اټک کي وفات سو او هوري ښخ دئ.

سید عبدالوهاب تر سلطان محمود وروسته د پښتنو مشر سو او د ده د خلافت چوغه یې واغوستله او هغه وخت چي عمر یې ۴۸ کاله و په ۹۹۰ هـ د پېښور اکبرپورې ته راغی او دلته یې له اټکه تر خیبره یو ملي او روحاني تنظیم جوړ کړ، او د عمر پر ۹٦ کال د رمضان پر ۲۷ مه ورځ دوشنبې ۱۰۴۰ هـ همدلته مړ سو او قبر یې تر اوسه هم معلوم دئ، خلک یې ننګوي.

دی په اخوند پنجو له دې جهته معروف سو چي د اسلام پر پنځ بنا به یې ډېر ټېکید کاوه او دغه دده د دیني تبلیغ موخه وه، خو دې سړي او د ده ډلي د طریقت د سجادې سره سره توره هم په ترخ کي لرله، او کوم وخت چي د پښتنو یو مشر شیخ فاضل خدرزی په بېلوت کي د ده مرید سو، نو د اخوند پنجو توره لا تېره سوه، او نفوذ یې په ټوله پښتونخوا کي خپور سو، حتّی رضواني وایي : چي په ۹۹۳ هـ اکبر پاچا هم په اکبرپوره کي ده ته راغلی و[۲].

عبدالوهاب دوه وروڼه عبدالرحمن او عیسٰی درلوده او دغه عیسٰی ځیني تذلیفونه هم لري، او تر ده وروسته د پښتنو د دغي ډلي ریاست عبدالرحمن ته ورسېده[۳] او اخوند یونس هم د ده له مشهورو شاګردانو څخه و، چي په خاد کي یې مزار تر اوسه هم ډېر مشهور دئ.

د اخوند پنجو په شاګردانو کي دوه وروڼه اخوند چالاک او اخوندسیاک (عمر) خورا شهرت لري او د خټکو څخه تر ننګرهاره د دوی نفوذ خپور و، دوی د افغانستان له شمالي خواوو څخه خټکو ته راغله او د چغرزو او اباسین او کابل، بګرام او هزاره او بونیر په غرو او سیمو کي یې د جهاد هنګامه توده کړه، د هغه وخت ډېر مشاهیر لکه : جمیل بېګ د خوشحال خان ورور او عمر خان د شیوې رئیس، او باکوخان د پنجتار مشر او اخوند شاه د هوتي مردان او د غرغښتي یارخان د دې ډلي مهم غړي وه، او شیخ رحمکار کاکا صاحب هم له دوی سره ملګري کوله [۴]. د دغي ډلي یو هدف دا و چي د هزاره په شمالي غرو کي د کشمیر وادي او کاغان، پکلۍ او الایي او نندهار او چیلاس پوي ځیني خلک وه چي په دوی کي اسلام نه و خپور سوی او د هغو مشر دوما نومېدی، نو دغو پښتنو دغه خلک د اسلام په دین مشرف کړه او هر ځای یې مساجد جوړ کړل او بل سیاسي او ملي مقصد یې دا و چي د مغولو په مقابل کي خپل ملي محاذ قوي کاندي او د هغو د تجاوزاتو مخه ونیسي.

د دوی ملي قوا اوس د باکو خان په قیادت او د ملا چالاک په فتوا تر پنځو زرو تنو پوري له یوسفزو څخه تشکیل سوې وه، نو دوی په پکلۍ کي د چهاچل کلا ونیوله او هلته یې د آزادۍ پرچم لوړ کړ، مګر اورنګزېب د مغولو امپراتور په ۱۰۷۷ هـ د کابل صوبه دار میرخان او د اټک فوجدار کامل خان د ډېرو قواوو سره پر دوی وګمارل.

دلته د افغانانو ملي قوا تر ۵۰ زرو پوري ورسېده او د ارونګزېب پاچا له ظالمو لښکرو سره یې خورا کلک او لوی لوی جنګونه وکړه. اورنګزېب خپل یو خونخور او زلند لښکري قوماندان اغر خان هم دلته راواستاوه، ده د ډېرو پښتنو سرونه ور پرې کړه او په کابل او پېښور کي یې له هغو څخه کله منارونه جوړ کړل.

د مغولو درباري مړرخان د دغو جنګو حال داسي لیکي چي :

په یوه جګړه کي د دوو زرو تنو پښتنو سرونه پرې کړل سوه او هغه یې ډیلي ته واستول، او هلته یې یو جګ کله منار ځني جوړ کی.

د مغولو مړرخان دا خبره مني چي دمخه د ډیلي پاچهانو د پښتنو په داخلي ژوند او کارونو کي مداخله نه

کوله مګر کوم وخت چي اورنګزېب دا ترتیب مات کړی نو یې نتیجه دا سوه چي ټولو پښتنو د دوی په مخ کي قیام وکړ، او دا هنګامه د ۱۰۷۷ هـ کال تر شواله هلته توده وه.

د دې ډلي علمي کارونه :

د چالاک ملګرو او د اخوند پنجو شاګردانو ځیني دیني او علمي کتابونه په فارسي او عربي او پښتو هم لیکلي دي، چي د دې ډلي د پوهني ذوق او علمي نشاط ښه ځني ښکاري، او دا راته ښرکندوي چي دوی یوازي جنګي او دیني مشران نه وه بلکي د علم او قلم خاوندان هم وه او پخپله چالاک دغه کتابونه کښلي دي :

فتاوای عربیه، بحر الانساب د پښتنو او ترکانو او ساداتو او د طریقت د مشایخو انساب، دریم کتاب یې غزویه و، چي د خپلي ډلي غزاوي یې له کوهستاني کافرانو سره شرح کړي وې، څلورم کتاب یې مناقب اخوند پنجو و په فارسي.

دغسي هم شیخ عبدالرحمن بن میان علي د اخوند پنجو مناقب په فارسي کښلي وه، چي دغه مناقب په ۱۱۹۸ هـ د اکبرپورې شاعر [خاکي] د [مناقب خاکي] په نامه نظم کړل او شیخ عبدالغفور عباسي پېښوري هم د اخوند پنجو مناقب ولیکل.

د دوی پښتو آثار :

په دغه ډله کي چي د پښتو ادب له پاره څه خدمت سوی دئ اوس ما ته دغه درې کتابونه معلوم دي :

(۱) پخپله عبدالوهاب په درو ژبو پښتو، فارسي، هندي خبري او لیک کاوه، ده د حنفي فقهي مشهور کتاب کنزالدقائق په پښتو منظوم کړی و.

(۲) د اخوند چالاک یو مرید ملا مست زمند و، چي په پښتو یې یو کتاب سلوک الغزات ولیکه، دا کتاب منثوري او منظومي برخي او تاریخي او حماسي مضامین لري، خلکو ته د غزا تشویق کوي او د خپل پیر چالاک مدح کوي او د خپلي ډلي د جنګو او غزاوو احوال لیکي. د دې کتاب یوه ناقصه واحده نسخه د کابل د مطبوعاتو په کتب خانه کي سته او پښتو ټولني رانیولې ده.

(۳) میان پادشاه د اکبر پورې د کندي شیخان اوسېدونکی دمخه ذکر سوی (مناقب خاکي) له فارسي څخه په پښتو منظوم ترجمه کړ او د لومړي او دریم کتاب خطي نسخې د پېښور په شاوخوا کي پیدا کیږي، او رضواني په تحفه کي د دې ډلي د رجالو احوال او مناقب په تفصیل سره لیکي[5].

لمن لیکونه :

۱. حیات افغاني، ۲۴۶ مخ.
۲. د رضواني تحفۀ الاولیاء ۳۴ مخ.
۳. تذکرۀ الابرار، ۱۸۵ – ۱۸۸ مخونه.
٤. تذکره ۱۳۲ مخ، تحفه ۳۲ مخ.
۵. کندهار مجله، ۱۳۴۱ ش کال، دریېمه ګڼه، ۳ مخ.